بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

فَلَمَّا تَجَلّٰی رَبُّهٗ لِلۡجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّ خَرَّ مُوۡسٰی صَعِقًا

چه په یو قدم تر عرشه پورې رسي
دوست دیوان د رحمان (رح) ترې دا غزل شه

ما لیدلي دي رفتار د درویشانو
چه بیان یې کړو کردار د درویشانو

# حُجَجُ السَّالِكِيۡن

# فِی

# ثُبُوۡتِ وَجۡدِ الۡمَجۡذُوۡبِيۡن

تالیف:

حضرت العلامہ خواجہ محمد حضرت صاحب نقشبندی مجددی رح

ناشر:

جناب شیخ المشائخ پیر طریقت رہبر شریعت حضرت علامہ فضل قادر نقشبندی رح

نشر و اشاعت: مکتبہ فریدیہ قصہ خوانی بازار محلہ جنگی پشاور

بسم اللہ الرحمن الرحیم

فلما تجلى ربه للجبل جعله دكا و خر موسى صعقا

چه په یو قدم تر عرشه پورے رسی
دا لیدلی دیے رفتار د درویشانو

دوست دیوان د رحمان زار تر دا غزل شه
چه بیا ئی لیے کړو کردار د درویشانو

# حُجَجُ السَّالِکِیْن

# فی

# ثُبُوتِ وَجدِ الْمَجْذُوبِیْن


تالیف:

حضرت العلامہ خواجہ محمد حضرت صاحب نقشبندی مجددی



ناشر:

جناب شیخ المشائخ پیر طریقت رہبر شریعت حضرت علامہ فضل قادر نقشبندی

نشر و اشاعت: مکتبہ فریدیہ قصہ خوانی بازار محلہ جنگی پشاور

## اعتذار:-

زموږ د دې کتاب د مطالعه کوونکو سره که بعض اعتراضونه پیدا شي د لاندې وجوهاتو په سبب به وي.

۱:- یواځې الله ج دے چه د عیب او نقصان نه مبرا او پاک دے نور شیان په ضرور عیب او نقصان لري.

۲:- خطاء او نسیان خاصا د انسان ملګري وي

۳:- که کوم ټکے یا جمله د لغت یا عربي قواعدو په لحاظ بې ربطه معلومیږي وجه ئې دا ده چه اکثراً د عوامو مسلمانانو د پوهېدلو په خاطر به شوي وي - كَلِّمُوا النَّاسَ عَلٰى قَدْرِ عُقُوْلِهِمْ - الحديث.

۴:- اکثر واقعات د صاحبانو ډیر لنډ او کوتاه دلته ذکر شوي او مرف د وجه متعلق یوه یا څو جملې ویلے شوي دا صرف د اوږدوالي د مخ نیوي په خاطر شوي.

ارزومند یم چه م معذور وګڼئ لیکن د دعا او نېک مشورې نه ګولو څخه به م نه هېروئ. فقط.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

پدې دور د غربتِ اسلامي کښې الله ج په مشرقي زمين کښې بې چينه د علم را
پيدا کړه او سا تور ے د معرفت په تجليد و شو او عالمونه د دوی د فيوضاتو
او برکاتو څخه رنګ شو حنفيان لا څه چه د نور و مذهبونو مقلدين هم د
دوی د سينې څخه فيضاب شو بلکه په ډيرکښ شمير کفار د دنيا د کټ
کټ څخه د مرغانو پشان د دوی په خانقا را توی شول (مسلمه) کمالات ئې اخذ کړل
او اوس په خپلو خپلو ملکونو کښې په ارشاد مصروف دی خو که يوې خوا
د ده په صحبت کښې خلک د کمالاتو خاوندان شو د بلې خوا نه ډيرکښ (خلک)
په ده مبارک باندې د بدګمانۍ په سبب د حق څخه منکر او په هلاکت ابدی
مبتلا شول ځکه الله ج فرمائي چه . (مَنْ عَادٰى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ اٰذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ)
يعنې چا چه زما د يو دوست سره عداوت اوکړو ځما سره دې ځان جنګړې
ته تيار کړی او دا يوا ځې (نه بلکه د ټولو اولياوو دا شان دے) چه دوستان به ئې سم عاشقان او پتنګان وی
او دوشمنان به ئې هر قسم کوششونه او تکليفونه ګالي تر څو د دې
عرفانې رڼا د مړه کولو د پاره اسباب جوړ کړې يائې اقلاً د خلقو په
شا کولو او بدګمانه کولو کښې څه ناڅه رول لوبولے وی او دا حالت د سردار
دو عالم نه شروع تر قيامته به وی دی منکرينو هر يو ته شيطان د
خصومت ځانته حيله ښو دلی ده مثلاً .

۱. اهل بدعت او اهل هوا او د گمراه فرقو خلقو ته ئې دا د ر معلومه کړې که د داسې عارف همه مو ونه نیوله نو ز ر ستاسې د کشتۍ د ډوبېدو امکان موجود دے.

۲. ناقص او مقلد پیرته ئې دا نزاکت په غوږ کښې وهلې چه که د وی عارف سپکاوې ونه کړې او خلک تری په کوم چل ونه تړوی نو ستا بازار سوړ شو عزت به دې ختم شو.

۳. بې عمله عالم ته ئې زړه کښې حبّ دجاه او عجب اچولے چه د مشهورو مدرسونه ته فارغ ئې د پېر علماء ستا شاګردان یا معتقدین دی نو بیا د عارف یادېږی او صفتونه د هر ځای د چغه وی عزت قدر او منزلت ولې د سبل چاته نصیب وی.

۴. بعض خلق د ظاهری مرضونو له وجه لکه حرام خوری، غلا، زنا یا بد باطنی مرضونو لکه حسد، بغض، حُبّ جاه او غیره شوه خدائی ورته توفیق د هدایت نه وی ورکړے - شیطان ورته بعض آداب یا بعض حرکات او سکنات د عارف په نظر کښې بد معلوم کړی ولو که هغه هر کار په مستحب یا مباح وی خو د د ه له نظره به شیطان یو لوی جنایت معلوم کړی نو بیا چه چرته کښینی غیبت یا بهتان به کوی. دا پورتنئ خلور لی او د دوی عقیدتمندان او ملګری او دوستان شیبه او ورځ په تخریب او سپکاوی کښې بوخت وی. لیکن د عارف څه نه شی کولے ځکه لمرته یا سپوږمۍ ته که څوک نه کینی تاوان ئې خپل دے د عارف هم دا مثال دے څمونږ ممدوح عصر پیر طریقت او رهبر شریعت قطب الاقطاب

حضرت اخندزاده (سیف الرحمن) دامت برکاتهم علینا - دوهم پابندۍ
شی بیعت او سنتو دے چه منکرینو ته هیڅ د پروا کند حیله نه
جوړیږی داخو پریږده چه د دله مریدان دوهم په ظاهر د شریعت
کښې د سنتو پابندی چه د سړه ترخپو پوری څوك خلاف شریعت
نقطه نشی موندلی او که کوم یو تارك د کوم سنت وی هغه به
یا مبتدی وی یا به د دله مریدنه وی.

مخالفینو د خلکو بدگمانه کولو او د تره ولو د پاره په وجد
او جزب باندی اعتراضونه شروع کړی او تر ډیره حده موفق
شوی هم دی ځکه وجدی حالات او حرکات غیرعادی وی او د عادت
نه خلاف وی او د عادت نه خلاف شی سره عقل مخالفت کوی بل په
موجوده عصر کښې دغه حالات په نورو وخلوتو کښې ډیر کم لیدل
کیږی بل ځینو کتابونو بعض روایتونه را نقل کړی اگرچه د هغې
جوابونه بیرته ویل شوی خو او سنیو علماؤ هغه خدائ د تحقیق توفیق
اخستی او که چا سره تحقیق وی د خپل نفسی غرض په خاطر ئې ځان
غلی نیولی - اظهار د حق نه کوی نو ځکه مونږ هغه روایتونه او
حدیثونه نقل کوؤ چه منکرینو د وجد د رد ولو د پاره دلیل نیولی ورته
په زمونږ نقلی او عقلی دلائیل وړاندی کیږی ترڅو نا خبره -
خلق په نا پوهۍ سره د اولیاؤ د خصومت له وجه د خدائ په
معاند یانو کښې شمار نه شی.

## دَ وجد تعریف

احیاء العلوم امام غزالی رحمة الله علیه ص۲۶۸ ج۲

ویثمر السماع حالة فی القلب تسمی الوجد ویثمر الوجد تحریک الاطراف اما بحرکة غیر موزونة فتسمی الاضطراب او اما موزونة فتسمی التصفیق والرقص .

(ترجمه) دَ سماع په نتیجه کښې په زړه کښې یو کیفیت پیدا کیږی چه وجد ورته وائی او دَ وجد نه خوزیدل دی دَ اطراف دَ زړه چه نور بدن ترې عبارت دے یا به دغه حرکت او خوزیدل غیر موزون وی څه ته اضطراب وائی او یا به دغه حرکت موزون وی چې څه ته شپیلۍ او رقص وائی .

عوارف المعارف تصنیف امام سهروردیؒ ص۱۱۷

الوجد وارد یرد من الحق سبحانه وتعالی

"ترجمه" وجد یو وارد دے چه وارد یږی دالله نه .

### (اقسام دَ وجد)

[illegible] تعبیر و اقسامو او اشکالو سره احساس کیږی کله به ژاړی کله به خاندی کله بې هوشه کیږی کله به په هوش وی لیکن دَ اندامونو دَ قرار طاقت به نلری کله به حرکات غیر موزون ترې صادر یږی کله به اه اوه کوی کله به یوه خبره بار بار تکرار وی خو بیدے هغه څوک پوهیږی چه یا ئې څپلے وڅکی او یا دَ جذوبانو متعلق دَ تصوف کتابونه مطالعه کړی .

① احیاء العلوم دَ امام غزالیؒ ص۲۷۵ ج۲

فمن الاصوات ما یفرح ومنها ما یحزن ومنها ما ینوم ومنها ما یضحک ویطرب ومنها ما یستخرج من الاعضاء حرکات علی وزنها بالید والرجل والراس .

"ترجمه" بعض غږونه او سماع سړی ته خوشحالی پیدا کړی بعض ئې غمګین کوی بعض خوب ورولی بعض ئې خندوی بعض دَ اندامونو څخه حرکات صادر وی لکه دلاس پښې او سر څخه ئې حرکات صادرشی .

(۲) عوارف المعارف ص ۱۱۷

وَاعْلَمْ اِنَّ لِلْبَاكِيْنَ عِنْدَ السَّمَاعِ مَوَاجِيْدَ مُخْتَلِفَةً فَمِنْهُمْ مَنْ يَبْكِيْ خَوْفاً. وَمِنْهُمْ مَنْ يَبْكِيْ شَوْقاً وَمِنْهُمْ مَنْ يَبْكِيْ فَرَحاً

"ترجمه"

پوه شه چه ژړېدونکي ته په وخت د سماع کښې مختلف وجدونه پیدا کیږي څوک له ویرې ژاړي څوک له شوقه ژاړي څوک د خوشحالۍ نه ژاړي.

(۳) تفسیر احمدي په ص ۶۰۳ کښې ذکر کړي دي.

اِنَّ اَهْلَ السَّمَاعِ يَتَفَاوَتُوْنَ فِيْ حَالِ سَمَاعِهِمْ - مَنْ يَغْلِبُ عَلَيْهِ فِيْ حَالِ السَّمَاعِ الْخَوْفُ اَوِ الْحُزْنُ اَوِ الشَّوْقُ فَيُؤَدِّيْهِ اِلَى الْبُكَاءِ وَالْاَنِيْنِ وَشَهْقَةٍ وَتَمْزِيْقِ الثِّيَابِ وَالْغَيْبَةِ وَالْاِضْطِرَابِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَغْلِبُ عَلَيْهِ الرَّجَاءُ وَالْفَرَحُ وَالْاِسْتِبْشَارُ فَيُؤَدِّيْهِ اِلَى الطَّرَبِ وَالرَّقْصِ وَالتَّصْفِيْقِ.

"ترجمه"

بې شکه خاوندان د سماع متفاوت دي په حالت د سماع کښې په چا باندې حالت کیږي یا غم یا شوق غالب وي نو ژړا، اَنین، چیغې، جامو څیرول، بیخودي لړزیدل وغیره حالات ورنه صادریږي. په چا باندې امید واري، زیرې او خوشحالي غالب شي کښېدل او ټپیدل تري صادریږي.

اوس دا چه ولې تري صادریږي نو کتابونو لیکلي دي چه روح د جسم سره خلط وي لیکن د چا د صحبت او توجه په سبب یا د سماع له وجه روح عروج شروع کړي لیکن جسد خاورو څخه مرکب دے ښکته زور کوي د روح د عروج مانع کیږي لکه د توپ بال چه باد ئې پورته بیائي جسد خپل جنسي خاصیت نه وجې ښکته څکي نو رسوي چه د دې کشمکش په ضمن کښې دا پورتني حالات پیدا کیږي. شرح موجود د ۳۵

د تفسیر احمدي په ص ۶۰۳ یا ص ۳۳ تحفه نصائح کښې بعینه تمې صفحه احادیث چه منکرین د وجد نفي تري کوي ذکر کیږي) عنوان

(۱) اَخْبَرَنَا عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ زُبَيْرٍ رض قَالَ -

"ترجمه"

خبر راکړي مونږ ته عبدالله بن زبیر رضی الله عنه

قُلْتُ لِجَدَّتِي اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِي بَكْرٍ رض كَيْفَ كَانَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ص يَفْعَلُوْنَ اِنْ قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ قَالَتْ كَانُوْا كَمَا نَعَتَهُمُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ تَدْمَعُ عُيُوْنُهُمْ وَتَقْشَعِرُّ جُلُوْدُهُمْ قَالَ فَقُلْتُ لَهَا اِنَّ نَاسًا اِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ خَرَّ اَحَدُهُمْ مَغْشِيًّا عَلَيْهِ قَالَتْ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ـ

"ترجمه"

ویلے چه ما او ویل خپلے نیا حضرت اسماء رض لور د ابی بکر رض ته چه څنګه وو حالت د اصحابه کرامو د رسول الله ص چه کله به دوی ته قرآن کریم لوستلے کیدو هغې اوفرمائیل چه هغوی دا سے وو لکه څنګه ئې چه صفت کړے الله چه "سترګې به ئې داو بنکو ډکې وی ـ پوستکے به ئې لړزیدلو" ما هغې ته وویل چه ځینی خلک دی چه قرآن ورته ولوستلے شی نو بې هوشه راګـذار شی هغې وویل زه پناه غوارم د شیطان رټــلی شوی نه.

۲ ـ رَوَى الْبَغَوِيُّ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ مَرَّ عَلٰى رَجُلٍ مِنْ اَهْلِ الْعِرَاقِ سَاقِطٍ ـ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ مَا بَالُ قَالُوْا اِنَّهُ اِذَا قُرِئَ عَلَيْهِ الْقُرْاٰنُ اَوْ سَمِعَ ـــ ذِكْرَ اللّٰهِ سَقَطَ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ اِنَّا نَخْشَى اللّٰهَ وَمَا نَسْقُطُ وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَدْخُلُ فِيْ جَوْفِ اَحَدِهِمْ مَا كَانَ هٰذَا صَنِيْعُ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ص.

"ترجمه"

روایت کړیدې امام بغوی رح چه ابن عمر رض تیر شو په یو عراقی باندې چه پروت وو هغه او ویل چه دا ولې غلګوا و ویل چه کله قرآن ورته ولا لوستلے شی یا ذکر د خدائ واوری را ولویږی ابن عمر رض اوفرمائیل مونږ د خدائ نه ویرو ولیکن را غورزیږو نه بیائې او فـرمائیل چه شیطان داخلیږی په خیټه د یو نیم کس کښې دا فعل د صحابه کـرامو د رسـول الله صلی الله علیه وسلم نه وو.

۳ ـ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ سِيْرِيْنَ

"ترجمه"

د عمران ځوی د عبد العزیز نه روایت د ـــ هغه فرمائیلي ما د محمد بن سیرین نه اوریدلی دی

وَسُئِلَ عَمَّنْ يَسْمَعُ الْقُرْآنَ فَيَصْعَقُ قَالَ مِيعَادُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ اَنْ يَجْلِسُوْا عَلَى حَائِطٍ فَيُقْرَءُ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ مِنْ اَوَّلِهِ اِلَى اٰخِرِهٖ فَاِنْ سَقَطُوْا فَهُمْ كَمَا يَقُوْلُوْنَ.

"ترجمه"

چه له ده رضي الله عنه سوال اوشو په باره د هغه چا کښې چه وا وري قرآن را لويږي هغه او ويل کسه د دې خلکو حقيقت معلومول غواړې نو کيږو ديوال په سر دې کينولي شي قرآن کريم دې ور ته اول نه تر اخره ورته واوروولې شي که راګذار شو وجدي صحي دې کنه د خلکو ويناصحي ده چه په دروغه ځان وجدوي.

د نور تفصيل د احاديثو څخه منکر بيږي نو داخبر کړي چه څوک د ذکر يا تلاوت په وخت کښې په ځمکه راګذارشو يا نورحالات وجدي ورباندي راشي داحالات شيطاني دي ليکن تفسير مظهري په ص۲۰ ج۸ کښې او تفسير روح البيان ص ج۸ کښې او په عوارف المعارف تصنيف امام سهروردي ج۲ ص۱۱۵ کښې ذکر دي چه د احاديثو نه په حق د اهل بدعت او اهل هوا کښې دي څوک چه مکراً او تکليفاً په ځمکو کښې ځان راګذاروي او د احديث مطلق نه دي د وجد نهي يا نفي په باره کښې ځکه د دوي هم د وجد څخه د انکار مقصد نه دي ځکه دا دري ۳ واړه مبارکات په علم د کتاب الله او سنت نبوي کښې د لويو بزرګانو ونه او په کتاب الله او حديثو کښې بي شماره دوجد ثبوتونه شته چه وروسته به راشي. بلکه دوي پخپله د بعض احاديثو راويان دي چه د هغوي څخه د وجد ثبوت کيږي چه لاندي به ذکر شي بل څيني اياتونه او حديثونه دال پدې خبره دي چه په ذکر شيطان غلبه نشي کولای. او بل پخپله په دوي هم داسي حالات راغلي چه د هغوي څخه هم د وجد ثبوت کيږي چه د نمونې په طور به لاندې ذکر شي.

۱- عَنْ اِبْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ

"ترجمه"

د ابن عمر رضي الله عنه روايت دے هغه وائي چه ما لمونځ

عُمَرَ فَسَمِعْتُ حَنِينَهُ مِنْ وَرَاءِ ثَلَاثَةِ صُفُوفٍ. رواه ابو نعيم فی الحلیة ص ٥٣ ج ١

کړېدلو ما او روسته د حضرت عمر رض نه اوریدلې ما وو اواز د ژړا د ده د درې صفه وروسته.

٢- عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ أَبِي بَزَّةَ حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ رض قَرَأَ "وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ" حَتَّى بَلَغَ "يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ" قَالَ فَبَكَى حَتَّى خَرَّ وَامْتَنَعَ مِنْ قِرَاءَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ.

"ترجمه" د قاسم ځوی د بزه نه روایت دے هغه وئیلي دی چه حدیث بیان کړې ماته هغه چا چه اوریدلې و د ابن عمر رض نه هغه مبارک او وئیل "ویل للمطففین" ترجمه ورسیده "یوم یقوم الناس لرب العلمین" ته راوی وائی چه وې ژړل حتی راګوزار شو او د ژړا له وجه نور قرآن و نه شو لوستلې.

٣. عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ سَلِيمٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ يَقُولُ مَا قَرَأَ ابْنُ عُمَرَ هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ قَطُّ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ إِلَّا بَكَى إِنْ هَٰذَا لَإِحْصَاءٌ شَدِيدٌ.

د براء ځوی د سلیم نه روایت دے هغه وائی ما د غلام د ابن عمر رض نه اوریدلی دی هغه وئیلې چه هر کله اخر دوه ایتونه د سورة بقرې ابن عمر رض وئیلې خامخا ئې ژړلي.

......

٤. عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَالِكٍ قَالَ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رض عِنْدَ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ وَهُوَ يَقُصُّ وَعَيْنَاهُ تُهْرَاقَانِ دُمُوعًا.

د یوسف ځوی د ماهک رض نه روایت دے هغه وئیلي ما وکتل ابن عمر د عبید بن عمیر رض سره چه قیصے کولې او سترګې ئې د اوښکو ډکې وې.

٥ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ رض إِذَا قَرَأَ "أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ" بَكَى حَتَّى يَغْلِبَهُ الْبُكَاءُ. رواه ابو نعیم فی الحلیة ص ٣٠٥ ج ١

د نافع رض نه روایت دے هغه وئیلې چه د ابن عمر رض دا عادت وو چه کله به ئې "الم یان للذین امنوا ان تخشع قلوبهم لذکر الله" وویلو نو ژړل ئې حتی چه ژړا به ئې دومره غالبه شوه چه دے به ئې د اختیار نه ووست.

فَلَمَّا طَالَ عَلَيَّ اَتَيْتُ السُّوْقَ ثُمَّ رَجَعْتُ وَهِيَ فِيْ بُكَائِهَا تَسْتَعِيْنُ

(رواه ابونعيم في الحلية ج ٢ ص ٥٥)

ترجمه

او دریم ځل هماغسې پناغونبتله نوما ته انتظار سخت شو بازار ته لاړم وروسته بیا راغلم چه ځه مبارکې هماغسې پناغونبتله او په ژړا کښې وه

١١ عَنْ بَشَرِ بْنِ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ اُمُّ عُبَادَةَ اِمْرَأَةُ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ قَالَتْ كُنَّا نُزُوْلًا مَعَ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ فِي الدَّارِ قُلْنَا نَسْمَعُ بُكَاءَهُ بِاللَّيْلِ وَضِحْكَهُ بِالنَّهَارِ.

د بشر ځوی د عمر نه روایت دی هغه وائی چه ما ته حدیث بیان کړیه ام عباده د هشام ښځې او د حسام لور چه مونږ به د ابن سیرین سره یو ځای کور ته راغلی وو مونږ به ئې د شپې ژړا او د ورځې خندا اوریدله.

١٢ عَنْ زُهَيْرِ الْاَقْطَعِ قَالَ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيْرِيْنَ اِذَا ذُكِرَ الْمَوْتُ مَاتَ كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُ عَلٰى حِدَةٍ.

(رواه ابونعيم في الحلية ج ٢ ص ٢٧٣)

د زهیر اقطع نه روایت دے هغه وائی چه د محمد بن سیرین چه مرګ به ورته یاد شو نو هر اندام به ئې مړ شو هر اندام په خپل ځای به پریوتو.

**یادونه** د پورته اثرونو روایتونو څخه دا واضحه شوه چه د دغه مبارکانو مطلق مقصد د وجد څخه انکار نه وو بلکې مقید وو په هغه چا پورې چه شریعت یا طریقت کښې د بدعت خاوندوی یا دا چه د مکر او خود نمائی د پاره په ځان وجد را ولی مونږ تاسو د کتابونو هم لیکلی چه وروسته به راشی. ځکه ژړا وجدی حالت دی لکه ځنګه

(هغه ایتونه چه غلبه د شیطان په منافقانو او غافلانو تری معلومیږی)

١ اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَاَنْسَاهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطَانِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطَانِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝

ترجمه

تفسیر ابن عباس په ص ٣٤٧ د دی ایت په تفسیر کښې لیکلی چه یهود او منافقانو باندې شیطان غلبه کړی حتی چه د خدائی

ذکر او اطاعت ئې پاتې او د شیطان اطاعت شروع کړي دا د شیطان لښکر د ے همدوی په تاوان کښې دی ۰

تفسیر روح البیان په صفحه ۳۴۶ د دې ایت په تفسیر کښې لیکلي دی چه زړه محل د ذکر دے کله چه ذکر ترې ورک شي یعنې غافل شي نو دا د ابلیس او د هغه د لښکر وطن شي او شیطان ملعون پرې غالبه او د دغه ملک رے جوړ شي نو بیا د الله ملک او رحمن نه وي ځکه حق او باطل نه جمع کیږي ۰

"ترجمه"

(۲) وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ وَاِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۔

څوک چه ځان غافل کړي د خدائی د ذکر څخه په هغه شیطان مسلط کړو د غه د ده سره پیوسته وي بیشکه دا شیطانان دوی له سمې لارې نه اړ وي خو دوی گمان کوي چه مونږ په سمه لاره یو ۰

د دې ایت په تفسیر کښې روح البیان په صفحه ۳۷۶ او تفسیر یسیر صفحه ۴۸۲ کښې لیکلي دی چه په دې ایت کښې اشاره ده دې خبرې ته چه څوک په دوام سره ذکر کوي شیطان ورته نزدې کیدے نشي ۰

او تفسیر مظهري په ص کښې لیکلي چه په دوام سره ذکر د لطائفو په ذکر کولو کېدو ممکن دے ۰

تفسیر کابلي په صفحه ۴۴۸ کښې لیکلي دی د دې ایت په شرح کښې "کسیکه از شنیدن یاد الهی اعراض میکند بطور خصوصی یک شیطان برو مسلط کرده میشود هر آن او را همرا و در دل او وسوسه های گوناگون انداخته میرود ۰

تفسیر روح البیان د "الذی یوسوس فی صدور الناس من الجنة والناس"
په تفسیر کښې لیکلي دي چه څوک د ذکر د قلب، روح، او سر څخه غافل
شي شیطان ورته وسوسې اچوي.

**تنبیه:** افسوس نن هغه څوک چه د پورته ذکر شوو لطائفو ذکر نه پېژني
او د ۷ لطائفو ذکر یې او پورې مسخرې کوي او مغلوب شیطان ئې بولي.

تفسیر مظهري د الخناس کلمې په تفسیر کښې لیکلي دي چه خناس صفت
دے د وسواس شیطان ځکه د هغه عادت دا دے چه په وخت د ذکر کښې
تښتي.

## (هغه احادیث چه غافل باندې د شیطان تسلط ترې ثابتیږي)

| | "ترجمه" |
|---|---|
| ١ عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلشَّيْطَانُ جَاثِمٌ عَلٰى قَلْبِ بَنِيْ اٰدَمَ فَاِذَا ذَكَرَ خَنَسَ وَاِذَا غَفَلَ وَسْوَسَ. | د ابن عباس رض نه روایت دے هغه وائي چه ویلي دي رسول الله ﷺ چه شیطان ناست دے په زړه د بني آدم باندې چه خدائ ذکر او کړي شیطان وه تښتي چه غافل شي نو شیطان وسوسې ور اچوي |

(رواه البخاري) مشکوٰة ص ۳۰ ترجمه

٢ تفسیر مظهري د سورة الناس په شرح کښې د ابو یعلی په حواله د وه حدیثونه
رانقل کړي دي تاسي ترې وړاندې کوم.

| | "ترجمه" |
|---|---|
| عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَقِيْقٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَا مِنْ اٰدَمِيٍّ اِلَّا بِقَلْبِهٖ فِيْ اَحَدِهِمَا الْمَلَكُ وَفِي الْاٰخَرِ الشَّيْطَانُ فَاِذَا ذَكَرَ خَنَسَ وَاِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ وَضَعَ الشَّيْطَانُ مِنْقَارَهٗ | د عبدالله بن شقیق څخه روایت دے چه جناب محمد رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه نشته یو بني آدم مګر په زړه کښې دي په یو کښې ملک دے په بل کښې شیطان دے چه کله ذاکر شي شیطان ري شي او چه کله ذکر نه کوي شیطان خپله مښوکه په زړه |

فِیْ قَلْبِهٖ وَسْوَسَ لَهٗ وَاَیْضًا رَوٰی اَبُوْ یَعْلٰی عَنْ اَنَسٍ عَنْهُ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهٗ .

"ترجمه"
کیږدی او وسوسی ورا چوی . او همدغه
بل حدیث د حضرت انس رض په روایت سره د
آنحضرت ﷺ نه په عین پورتنی مضمون سره نقل کړی دی

د پورتنیو دری ایتونو او دری حدیثونو مرفوع نه په ډاګه معلومیږی
چه شیطان ذاکر ته وسوسه هم نشی اچولی چه د وسوسی نه عاجزه دی نو د
تسلط او راچپه کولو د ذاکر نه بالکل عاجز دی او که عاجز نه شی نو بیا تری
د لحلک په څه خلاص شی کوم شیان چه الله د شیطان د دفع لپاره دوا -
بښودلی ده هغه ذکر او قرآن دی چه په دوام وسره نا جوړه شی نو جوړی
به په څه شی بلکه په ذاکرینو دومره زړه ور شی نو یکاره چه په غافلانو
فاسقانو، منافقانو او کافرانو باندی دومره زړور شی چه شپه او ورځ
بی هوشه د شیطان د غلبی په اثر پراته وی .

## هغه ایتونه او حدیثونه چه وجد تری ثابتیږی

(۱) فَلَمَّا تَجَلّٰی رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَکًّا وَّخَرَّ مُوْسٰی صَعِقًا .

"ترجمه"
هر کله چه تجلی اوکړه رب د موسی ع غره ته
غر ټوټی ټوټی شو او موسی ع بی هوشه
را ګنګار شو. په دی ایت کښی بی هوشه کیدل یا ګنګار یدل په سبب د انعکاس
د تجلی د انوارو ثابت شو .

(۲) وَاخْتَارَ مُوْسٰی قَوْمَهٗ سَبْعِیْنَ رَجُلًا لِّمِیْقَاتِنَا فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ .

"ترجمه"
غوره کړه موسی ع زمونږ د میقات لپاره
اویا کسان پس هر کله چه ورته نیوله زلزلی
د رجفی معنی جلالین، مظهری

اونورو تفسیرونو د ابن عباسؓ په روایت سخته زلزله وه ټولې دی

(۳) تفسیر کبیر په ص۲۱ ج۸ او مظهري ددې آیت په تفسیر کښې لیکلې دی.

انّ تلك رجفة ما كانت موتاً ولٰكن القوم لمّا رأوا تلك الحالة المهيبة اخذتهم الرعدة ورجفوا حتى كادت تبين منهم مفاصلهم وتنقصم ظهورهم وخاف موسى عليه السلام الموت فعند ذالك بكى ودعا فرفع الله عنهم تلك الحالة.

"ترجمه"

په دغه رجفه کښې مرګ نه وو لیکن قوم چه کله دغه حالت پرهیبته وه لیدو لړزیدل او زلزله وه نیول نزدې وو چه مفاصل ئې سره جدا شي ملاګانې ئې ماتې شي موسیٰ (۴) وه ویریدل د مرګ نه نو وه ئې ژړل او دوعائې اوکړه. خدای جل جلاله ئې ترې دغه حالت لرې کړو.

د پورتنۍ آیت او شرحې څخه د وجود لړزیدل او رګیدیدل او هر قسم حالات ترې ثابتیږي په یو عمل یا حالت کښې چه پرهیبته وي. خواوس ددې وضاحت پکار دے چه داخلک نیکان وو او که بدان او دا حالت حسنه دے او که قبیحه. نو زه وایم چه دا خلک نیکان او حالت حسنه دے ځکه چه اول تفسیر روح المعاني او مظهري لیکلې دی چه دا اشراف او نجبا د قوم او فرمانبردار او د معاونینو او مطعینو د موسیٰ علیه السلام وو او ټولو تفاسیرو لیکلې دی چه دوی د "سمنې" عبادت نه ده کړې بل موسیٰ علیه السلام خوښ کړې وو د پیغمبرؑ خوښ کړي به خامخا نیه وي هر کله چه موسیٰ علیه السلام د دولسو قبیلو څخه ۷۲ کسان خوښ کړل نو ۷۲ شول نو دوه زیات وو بیا موسیٰ علیه السلام او فرمائیل چه تلونکي پاتې کیدونکي

ثواب کښې برابر دی که د خلک بندہ ته وې او کار د ثواب نه وې د اخبره ئې نه کوله . بل موسیٰ "علیه السّلام" د دوی ګرو چه بې عقلانو په عمل موسیٰ پیغمبر د عا نه کوله .

په چلاکوی نو کاذو ماظالم په سعق کیږي

بل تفسیر مسـ[illegible] او صاوی د ابن عباس رضی په روایت سره لیکلې چه د صاعقې خاوندان نور دی ددی او یا ؤ حشه مخکښې وه او تفسیر کابې

هم د افسول غور کنلی دے او ددی ایت نه هم معلومیږی چه " فَقَالُوا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ بِظُلْمِهِمْ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ "

تفسیر حسینی په صفحه ۳۲ کښې لیکلی دی چه . (لرزهٔ بر اندام ایشان افتاد که نزدیک به جدا شدن مفاصل بود).

"ترجمه"

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ . | زیری ورکړه هغه خاشع او متواضع خلقو ته چه خدائ ورياد شي نو زړونه ئې وويريږي .

نوټ :- او س که څوک وائي چه ويره پته وی څنګه د وجد ثبوت تری کیږی نو زه وايم که زړه کښې رښتیا ويره راشي او تشه دعوه نه وی حتماً په بدن اثر پيدا کيږي تاسی په مجازی ويره کښې متوجه شوی یاستئ چه د يو پوليس په مخ کښې يو مجرم يا د يو معلم په مخکښې نا پوهه شاګرد يا يو سړی چه نوی وعظ یا تبلیغ او اما ته مخکښې کیږی په وجود ئې لرزه راځی دائې زړه په رعب او ويره کښې واقع وی همدا رنګه حالت په ذاکرينو هم راځي چه پورته ايت ئې ګواهی کوی او س په ځينی خلک وائي چه مونږ ه باندې د ذکر وخت کښې ولی نه راځي جواب ئې دا دے چه دی ايت کښې ذکر د مخبت دے څوک چه په رښتيا په مخبتينو کښې شمار شي نو علامه به ئې دا وی تفسیر مظهری لیکلی چه مخبت هغه سړی ته وائي چه

چه نهایت خشوع او عاجزی تواضع ئې زړه کښې وی . بل تفسیر روح البیان او تفسیر کبیر لیکلي چه داویره په اهل کمالو راځی د دواړو تفاسیرو مضمون په لاندی دول دے .

"ترجمه"

| | |
|---|---|
| وَهٰذَا الْخَوْفُ لَازِمٌ لِاَهْلِ الْكَمَالِ سَوَاءٌ كَانَ مَلَكًا مُقَرَّبًا اَوْ نَبِيًّا مُرْسَلًا اَوْ مُؤْمِنًا تَقِيًّا وَنَقِيًّا وَهٰذَا عَلَا فِكْرِ اللّٰهِ بَلْ بِمُلَاحَظَةِ الْمَعْصِيَةِ وَذِكْرِ عِقَابِ اللّٰهِ اِنْتِقَامًا مِنَ الْعُصَاةِ . روح البیان جلد ۳ ص۲۱۲ | داویره اهل کمالو ته حتمی وی که هغه ملک مقرب یا نبی مرسل یا مؤمن با تقوی او پرهیزګاره وی او دا مخالفه د ویری د عقاب د ګنهګارته په مجرد ذکر الله نشي حاصلیدے بلکه خپله ګناه او د هغ عذاب چې ګنهګار و ته ورکول کیږی خپلې مخې ته دروی . |

اوس که یو سړی په دې صفاتو نه وی موصوف او د اهل کمال او مخاشعینو په صحبت کښې په پوره نیکه عقیده او نیک ګمان کښېني او خپل ګناهونه مخې ته ودروی نو زړه کښې عاجزی شروع کړی د وجلت قلوبهم په مقصد بوه شی .

حافظ ابونعیم په ص۲۳ حلیه کښې لیکلي چه صوفی به دائم الوجل وی او په ص۲۶ کښې لیکلي چه وجل د صوفی شعار وی .

"ترجمه"

| | |
|---|---|
| ۵ وَاِذَا سَمِعُوْا مَا اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰى اَعْيُنَهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ . | هغه وخت چه واوری دوی هغه قرآن چه رالیږلی شوے رسول ته نو ګوری به ته سترګی د دوی چه تو یوی اوښکی لدی |

وجهونه چه حق ئې پیژندلے .

**یاداشت!** کله کله سالکانو ته رقت عارض شی کله زړه غونی شی او کله په زوره په چیغو چیغو ژاړی ثبوت ئې لدے ایت شریف څخه معلومیږی .

(٤) تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ.

ترجمه: لړزیږي او ویریږي پوستکي دهغو کسانو چه خدائی نه ویریږي بیائې پوستکي او زړونه نرم شي دخدای ذکر ته.

—— یعنې کله چه ذکر د عذاب په آیتونو کې د قرآن نه واوري زړه کښې وه ویریږي او پوستکي وه ریږدي او لړزیږي او کله چه ذکر د رحمت د آیتونو د وعدې د قرآن څخه واوري پوستکي او زړونه ئې نرم شي او آرام شي. او د (تَقْشَعِرُّ) معنیٰ تفاسیرو تَرْتَعِدُ، تَضْطَرِبُ او تَتَحَرَّكُ او تغیر فی جلد الانسان کړی په فارسي ژبان کې روح البیان او جلالین په لړزي سرکړیدلا نو چه لړزیدل د پوستکي ثابت شو نو خوزیدل او لړزیدل د پوستکي بغیر دلړزیدلو د وجود نه ممکن ندی، حکه غیر د نولك نه نورتمول وجود په پوستکي پټ دے او پوستکي وریپوري کلك نښتي نو چه پوستکي لړزیږي او ریږدي نو وجود به و سره خامخا لړزیږي او ریږدي.

(٧) فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً وَآتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا إِنْ هَٰذَا إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ

ترجمه: هرکله چه بی بی زلیخا د خبرو د نبارګ ښځو نه خبره شوه دوی ته ئې سړے ورولیږه دوی ئې راغلې نبي تکیه ګانې ئې ورته جوړې کړې او هر یوې ته ئې چاړه ورکړه او یوسف ته او وئیل چه را اوزه په دوی هر کله ئې چه یوسف وه ولیدو وډیر لوی ورته معلوم شو او لاسونه ئې پرې کړه او وه وئیل چه پاکي ده خدائی لره دا بشر نه دے بلکه دا یوسف یوه فرښته ده.

تبصره: کابلی تفسیر په ص۲۱۷ ج۲ کښې لیکلي دي.
زنان به مجرد دیدن جمال یوسف از خود رفتند و بجای میوه دستان خود را بریدند.
تفسیر روح البیان د دې آیت په شرحه کښې لیکلي دي په ص۲۴۲ کښې.

وَالْمَدْهُوشُ لَا يُدْرِكُ مَا يَفْعَلُ - وَلَمْ تَقْطَعْ زُلَيْخَا يَدَيْهَا لِأَنَّ حَالَهَا انْتَهَتْ إِلَى التَّمْكِينِ فِي الْمَحَبَّةِ كَأَهْلِ النِّهَايَاتِ وَحَالَ النِّسْوَةِ كَانَتْ فِي مَكَانِ التَّلْوِينِ كَأَهْلِ الْبِدَايَاتِ فَلِكُلٍّ مَقَامٍ تَلَوُّنٌ وَتَمَكُّنٌ وَبِدَايَةٌ وَنِهَايَةٌ.

"ترجمه" مدهوش نه پوهیږي په خپلو کړو او زلیخا ځکه لاس ونه غوڅ نکړه چه حال د هغې رسیدلی وو تمکین ته په محبت کښې لکه حالت د منتهیانو او حالت د ښځو مقام د تلوین کښې وو لکه د مبتدیانو پشان پس هر مقام ته تلوین، تمکین، بدایت او نهایت شته.

او تفسیر جلالین هم په ص۱۹۳ کښې لیکلي دي. چه د یوسف (ع) په لیدو ښځو لاسونه غوڅ کړه د عشق په وجه نو که زموږ په امت کښې یو عاشق خدا او عاشق رسول بانډې د عاشقانه اشعارو د اوریدو په وجه کوم وجدي حالت راشي څه اعتراض پرې کیدای شي.

بلکه زموږ امت بهتره امتونو دے او دا بهتروالی په عشق او محبت پورې هم مربوط دے که مونږ پښې پریکړو هم کمه ده که څوک وائي چه هغوی وصل غوڅ کړي نه وایم چه عاشق ته وصل او هجر فرق نلري.

(۸) إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ "ترجمه" بیشکه ابراهیم علیه السلام دامي پیغمبر وُ چه آه او اوه به ئي ډیر کول.

نوټ:- دا ترجمه د ابن عباس په ص۱۳۹ مظهري په ص۳۰۹ ج۴ او روح البیان

په مشکوٰة ۵۲۳ ۵۲۳ کښې کړیدۀ حتیٰ چه مظهری لیکلی دی

اَلَّذِیْ یَکْثُرُ التَّاَوُّهَ لِکَمَالِ خَشْیَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَقَالَ الْبَغَوِیُّ اَنَّهٗ جَاءَ فِی الْحَدِیْثِ اَلْاَوَّاهُ الْخَاشِعُ الْمُتَضَرِّعُ وَقِیْلَ اَنَّهٗ کُلَّمَا ذَکَرَ تَقْصِیْرَ اَوْ ذُکِرَ لَهٗ شَیْءٌ مِّنْ شَدَائِدِ الْاٰخِرَةِ کَانَ یَتَاَوَّهُ اِشْفَاقًا وَّاسْتِعْظَامًا کَمَا قَالَ کَعْبٌ اَلْاَوَّاهُ هُوَ الَّذِیْ اِذَا ذُکِرَتْ عِنْدَهُ النَّارُ قَالَ اٰهْ.

ترجمه "آه اوه کوی دا د وجه دَ هغه کس چه ډیر دیرے یرے دَ خدائی نه وی - او امام بغوی ویلی دی چه په حدیث مبارک کښې راغلی دی چه اوّاه خشوع کوونکی او تضرع کوونکی ته وائی او ویلے شویدی چه هر کله خپله کمی یا دَ آخرت سختی ورپیاده شی نو آه اوه کوی ځکه عذاب ورته سخت او لوی معلوم شی لکه چه حضرت کعب ویلی دی چه آه اوه کوونکے هغه څوک دے چه اور ورته یاد کړیشی نو آه او وائی.

**فائده** | د پورتنیو بیاناتو څخه دا واضح شو چه آه اوه یو پیغمبری صفت دے د چا په زړه کښې چه نهایت خشوع وی د هغه نه دا آه اوه اوزی.

بعض خلک وائی چه لمانځه کښې آه اوه فاسدونکی دی موږ وایو که دا خلک داخبره دکتاب نه وائی نو هم څو کتاب وکاکوری چه د غه آه اوه ئی مقید کړی په درد او مصیبت پوری چه د درد مثالونه سرے په هسپتال کښې موندے شی او دَ مصیبت مثالونه سرے په مړو او نورو دردونو واقعاتو کښې موندے شی او هم دَ کتابونو د اصفا لیکلی چه که آه اوه د ذکر د جنت یا د دوزخ نه وی نو بیا پری مونځ نه فاسدیږی دا رنګه مثالونه د ذکر په حلقو کښې راځی ځکه مشائخ عظام وارثان دَ انبیاء "علیهم السلام" دی او دَ انبیاء په صحبتونو کښې هم دا آه اثر موجود وو چه خلکو ته به ذکر الله او جنت او دوزخ په یاد کیدو همدا رنګه دَ یو حدیث شریف مضمون دے

چه حضرت حنظله رض او ابوبکر صدیق رض آنحضرت ص ته عرض کوی چه ستا په صحبت کښې مونږ ته داسې جنت او دوزخ تول یاد وی چه بهر شو بیا هغه کیفیت په هغه اندازه نه پاتې کیږی اوس د څو معتمدو فقهی کتابونو لیکنې ذکر کوو چه د لمانځه د نه فاسدولو حکایت کوی.

(۱) مرقات ص۱۵۰ ج۳ کښې ذکر دی.

وَفِی شرحِ المنیة اذا بکی فیها وَحَصَلَ مِنهُ صَوتٌ مَسمُوعٌ فان کان مِن ذکرِ الجَنَّةِ اَوِ النَّارِ اَو نحوهما لم یَقطَعهَا لِاَنَّهٗ بمنزلة الدُّعَاءِ بالرَّحمَةِ وَالعَفوِ وَان کَانَ مِن وَجعٍ اَو مصیبةٍ یَقطعهَا لِاَنّه بمنزلةِ الشکایةِ وَهُوَ مِن کلام النَّاس.

"ترجمه"

او په شرح د مُنیه کښې ذکر دی چه کله چیرته یو چا وژړل په مانځه کښې او د ژړا نه صوت حاصل شو چه اوریدې شو نو چیرته د یاد د جنت یا دوزخ (اور) نه وی یا په مثل د دې موږ نه فاسد وی ځکه دا په منزله د دُعا دے په رحمت او عفو سره او که د وجه د مصیبت یا درد نه وو نو فاسد وی ځکه دا په منزله د شکایت دے او دا د کلام الناس نه دے.

(۲) هدایه ص۱۲۴ ج۱.

ان أنَّ او تأوّه او بکی فارتفع بکاءه فان کان من ذکر الجنة او النار لم یقطعها بل یدل علی زیادة الخشوع

"ترجمه"

که چیرته یو سړے آن یا آه اوه وکړی یا وژاړی چه اوچته شی ژړا د ده ـ نو که د ذکر د جنت یاد اور نه وی موږ نه فاسد وی بلکه ـ دلالت کوی په زیادت د عاجزئ باندے.

(۳) عالمگیری ص۱۰۱.

ولو أنَّ فی الصّلوة او تأوّه او بکی فارتفع بکاءه فحصل له حروف فان کان من ذکر الجنة او النار فصلوته تامة.

"ترجمه"

که یو سړے ان یا آه اوه یا ژړا اوکړی په مانځه کښې چه اوچته شی ژړا د ده او جوړ شی د ځه حروف نو که د یاد د جنت یا د اور نه وه نو موږ ئې تمام دے.

۴ فقه علی مذاهب الاربعة ص۳۰۰ ج۱ .

"ترجمه"

| | |
|---|---|
| ان کان الانین والتاوه والبکاء ونحوها ناشئة من خشیة الله فانها لا تبطل الصلوٰة . | که ان او اه اوه او ژړا اویا په مثل دَ دے که چیرته نشئه ئی دَ ویرے دَ خدائے (یعنی پیدا شوی وی) نه وه نو دا نه باطله وی مونځ . |

۵ خلاصة الفتاوی ص۳۸ ج۱

"ترجمه"

| | |
|---|---|
| وفی جامع الکبیر ولو بکی فی صلوٰته ان سال الدمع من غیر صوت لا تفسد وان رفع صوته وان حصل به حروف ان کان من (الجنة) ذکر الجنة اوالنار لم تفسد صلوٰته | او په جامع کبیر کښې دی چه که یو سړے وژاړي په مانځه کښې کچرته وه بهیے اوښکې بغیر دَ اواز نه نو مونځ نه فاسد وی اوکه اواز ئې اوچت شو نو اګر که حروف ورنه حاصل شی خو که دَ ذکر دَ جنت یا اور نه وی نو مونځ نه فاسد وی. |

۶ طحطاوی ص۲۶۳ .

"ترجمه"

| | |
|---|---|
| ویفسدها التافیف والأنین والتأوه وارتفاع بکائه من وجع ولا تفسد بحصولها من ذکر الجنة اوالنار اتفاقا لدلالتها علی الخشوع ای الخوف من الله الواحد القهار . | او فاسد وی مانځه لره اوف اوف أن أن او اوه اوه کول او اوچتول دَ ژړا دَ وجه دَ درد نه او نه فاسدیږی په حصول دَ دغے حالا تو دَ یا دَ جنت یا جهنم نه په اتفاق دَ علماؤ سره دَ وجه دَ دلالت دَ دے نه په عاجزی باندے یعنی خوف دَ خدائے (ج) نه چه یو دے او زبر قهر کوونکی دے . |

که څیني خلك خشیت صرف عالمانو دَ علم ظاهر پورے خاص کوی نو دا خبره بے سنده ده ځکه حسن بصری (رح) فرمائی چه علم دَ زړه نافع دے دَ علم دَ ژبے نه او علم دَ زړه په علم باطن او علم طریقت کښې حاصلیږی چه مراد همدغه ذاکرین دی .

همدا رنګه د بدائع الصنائع په ۲۳۵ کښې ذکر دی.

ولو أن في الصلوة او بكى فارتفع بكاؤه فانكان ذلك من ذكر الجنة او النار لا تفسد الصلاة وانكان من وجع او مصيبة يفسدها لان الأنين او البكاء من ذكر الجنة او النار يكون لخوف عذاب الله واليم عقابه و رجاء ثوابه فيكون عبادة خالصة ولهذا مدح الله خليله عليه السلام بالتأوه فقال إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ لأنه كان كثير التأوه في الصلوة وكان لجوف رسول الله ازيز كازيز المرجل في الصلوة و اذا كان كذلك فالصوت المنبعث عن مثل هذا الأنين لا يكون من كلام الناس فلا يكون مفسدا.

مطلب دا چه که یو سړی اَنّ اوکړی په مانځه کښې یا وژاړي نو اوچته شي ژړا د ده لوکه د ذکر د جنت یا د جهنم نه وه مونځ نه فاسدوی او که د درد یا مصیبت نه وه فاسدوی یې ځکه انین او ژړا د یاد د جنت یا جهنم نه وی د ویرے د عذاب د الله تعالیٰ او د دردناکه عذاب د ده نه او د امید د ثواب نه نو شوه دغه ژړا د عبادت خالصه نه او د دے وجه نه صفت کړے الله ج د دوست خپل (چه ابراهیم ع) د دے په اوه اوه سره او ویلی دی الله ج "په تحقیق سره ابراهیم چه د دے خاماخا ډیر اوه کوونکے او برده بار دے" ځکه دے ډیر اوه کوونکے وو په مانځه کښې او وه د خیټے مبارکے د نبی اکرم ص شرنګا او خوټیدا لکه د خوټیدو د دیګ په مانځه کښې هر کله چه داسے شوه نو اواز جوړ شوے د دغه آهو نو نه نکیږی د خبرو د خلقونه نو مفسد د مانځه هم نه شو.

لکه چه مخکښې یا نه کښې حدیث ذکر شو چه پیغمبر ص په محبت کښې به صحابه کرامو رض ته جنت او دوزخ یادیده نو لمونځ خو ذکر او مناجات د خدائی ج سره دے او بیا چه د یو ولی پسے ئی اقتداء کړی وی او درحالیکه چه په ذکر د مخلوق سړے معذور ګڼل کیږی نو په ذکر د خالق به څرنګه مسئول شی.

(هغه [illegible] ایت چه نبی [illegible] وجدی [illegible] ملومیږی)

ثم نوديت فلم ارا احداً ثم نوديت فرفعت رأسی فاذا هو على العرش فی الهوا يعنی جبرائیل علیه السلام فاخذتنی رجفة شديدة فاتيت خديجة رض فقلت دثرونی فدثرونی فصبت علی ماء فانزل الله تعالى يا ايها المدثر "الاية"

بیا راته غږ او شو خو څوک مې ونه لیدل و بیا غږ اوشو چه سرمې اوچت کړو نو دے په عرش دپاسه وو په هوا کښې یعنې جبرائیل ع نو زه ډیر په سختۍ لړزیدم بی بی خدیجه رض ته راغلم ورته مې او ویل شړۍ راباندې واچوئ بیا ئې راباندې واچوله بیا خداوند متعال دا سورت مبارک نازل کړو چه (یا ایها المدثر)

د دې حدیث شریف نه د وجود لړزیدل ثابت شو او اسباب ئې پورتنی څلور دی یعنی نزول د انوارو لیدل د ملائکو مقربو او توجه د هغه او نزول د فیوضات نبوت.

۱۳ مشکوٰة شریف صا۹ کتاب الصلوٰة.

"ترجمه"

وعن مطرف بن عبد الله بن شخير عن ابيه قال اتيت النبی ص وهو يصلی ولجوفه ازيز كازيز المرجل يعنی يبكی وفی رواية قال رأيت النبی ص يصلی وفی صدره ازيز كازيز الرحى من البكاء رواه احمد وروى النسائی رواية الاولى وابوداؤد الثانية .

د مطرف څوی د عبد الله هغه څوی د شخیر هغه د پلار نه روایت کوی وائی چه را غلمه پیغمبر ع ته هغه لمونځ کولو او په سینه مبارکه کښې ئې اواز وو لکه په شان د اواز د جوش د هوتکی دیګ یعنی ژړل ئې په بل روایت کښې وائی چه نبی علیه السلام مې اولید و چه لمونځ ئې کولو او په سینه کښې ئې شرنګاری وو لکه پشان د شرنګار د ژرندې له ژړا نه

اولنی روایت نسائی او دوهم روایت ابوداؤد کړیدے.

نوټ | مرقاة په جوزء ۱۵ کښې لیکلې دی.

ویتولد فی الجوف ماینشاء عنه صوت یسمع من داخله لشدة ماحصل للاعضاء الباطنة من الاضطراب والقلق واستولی علیها من نار الخوف والحزن.

**ترجمه**

او پیدا سره پیدا کیږي په کیدا کښې او هغه شے چه نشئت کوي د هغه نه غږ چه اوریدے شي د داخل نه د شدة د هغه غم چه حاصل شوے وي باطني اعضا ئو لره چه عبارة دے د شورش او اضطراب نه او خوف او غم د اور وربانده غلبه پیدا کړي.

شیخ عبدالحق رح په مشکوٰة مترجم کښې نقل کړي دي هغه فرمائي چه ددې حدیث شریف نه دا ثابتیږي شوه چه څوک لمانځه کښې ژاړي لمونځ ئې نه ماتیږي.

ع کتاب عوارف المعارف په ص ۱۲۱ تصنیف شیخ شهاب الدین سهروردي رح او تفسیر احمدي ص ۶۰۲ کښې د حضرت انس رض په روایت سره حدیث داسې بیان کړیدے.

عن انس رض قال کنا عند رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا نزل علیه جبرائیل ع فقال یارسول الله ان فقرآء امتک یدخلون الجنة قبل الاغنیآء بنصف یوم وهو خمسمائة عام ففرح رسول الله ص فقال هل فیکم من ینشدنا فقال بدوی نعم یارسول الله فقال هات فانشاء الاعرابی.

(قد لسعت حیة الهوی کبدی

**ترجمه**

حضرت انس رض فرمائي چه یو ورځ مونږ د پیغمبر علیه السلام سره ناست وو چه جبرائیل علیه السلام راغی وې وئیل چه فقیران د امت ستا به داخلیږي جنت ته د غنیانو نه نیمه ورځ وړاندې چه هغه پنځه سوه کاله دي نو پیغمبر ص خوشحاله شو وې فرمائیل څوک شته چه شعر راته او وائي نو یو اعرابي سره او وئیل چه زه یم اجازه اوکړو چه او وایه هغه دا شعر او وئیلو.

(زمانړه د هوا او هوس مار چیچلے دے.)

فلا طبيب لها ولا راق ❊ )
(الا الحبيب الذي شغفت به
فعنده رقيتي وترياقي )
فتواجد رسول الله ﷺ وتواجد
الاصحاب معه حتى سقط
رداءه عن منكبيه فلما فرغوا اوى
كل واحد منهم الى مكانه قال
معاوية بن ابي سفيان ما احسن
لعبكم يا رسول الله فقال يا معاوية
ليس بكريم من لم يهتز عند
سماع القرآن ثم قسم رداءه
رسول الله ﷺ على من حاضرهم
باربعمائة قطعة فهذا الحديث اوردناه
مسندا ووجدناه وقد تكلم في
صحته اصحاب الحديث .

ترجمه

(نه هغه لره طبيب شته او نه دم کرے)
غير د هغه حبيب نه چه زړه پرې مينم
لالا سره حُما دم او دارو شته
نو پيغمبر عليه السلام او صحابه کرامو تواجد او
کړو حتىٰ چه څادر مبارك ئې د اوږو مبارکو
نه کنار شو هر کله چه فارغه شول هر
څوك خپل ځای ته لاړو بيا معاويه رضــ
او ويل څه ښائيسته لوبې ستاسو وې
يا رسول الله ﷺ هغه او فرمائيل چه ښه
سرے ندے چه په ذکر د خپل حبيب ونه
خوزيږي چه د هغه نوم واوري بيا
ئې څادر مبارك څلور سوه ټکړې کړو په
حاضرينو ئې تقسيم کړو دا حديث شريف
لکه څرنګه مو چه موندلے سره د اسنادو
مو تا سو ته وړاندې کړو .

(۵) تبليغ نصاب په صفحه ۳۹ حکايات صحابه او احياء العلوم په صفحه ۲۹۷ / ۳ کښے ليکلے دی
چه حضور ﷺ يو شپه تو له تر له او صبا پورې به ئې لمانځه کښے دا ايت لوستو (ان
تعذبهم فانهم عبادك وان تغفر لهم فانك انت العزيز الحكيم)
ترجمه : اے خدايه که ته دوی په عذابوې نو ستا بندګان دی او که بخنه ورته
کوې نو ته د غلبې او حکمت خاوند ئې .

۷ احیاء علوم الدین تصنیف امام غزالی رحمة الله علیه په ص ۲۹۷ ج ۳ کښې لیکلې دی.

وروی ان ابن مسعود رض قال
تلی الرسول الله صلی الله علیه وسلم
سورة النساء فلما انتهی الی قوله
تعالی (فکیف اذا جئنا من کل امة
بشهید وجئنا بک علی هٰؤلاء
شهیدا) قال حسبک وکانت
عیناه تذرفان بالدموع "متفق علیه"

"ترجمه"

روایت دے چه یوه ورځې ابن مسعود رض
پیغمبر (ع) ته سورة نساء لوستلو چه کله ئې دا
آیت مذکوره لوستو وه ئې فرمایل بس
دے او سترګے مبارکې ئې داوښکو
ډکې وې.

* * * *

* * *

په یو روایت کښې دی چه پیغمبر علیه السلام د آیت مبارکه تلاوت کړو (ان لدینا انکالا
وجحیما وطعاما ذا غصة وعذابا الیما) او یا ورته تلاوت کړیشو نو فصعق او س د -
صعق معنی یا بې هوشی دکا یا چغې دی چه دواړه حالتونه د وجد دی.
(رواه ابن عدی فی الکامل والبیهقی فی الشعب)

۸ په مرقات ص ۱۰۲ ج ۹ کښې ذکر دی.

عن جابر بن سمرة قال جالست
النبی صلعم اکثر من مائة مرة وکان
اصحابه یتناشدون الشعر وهو ساکت
وربما یتبسم معهم وما حکی عن بعض
المشائخ انه بعد الصلوٰة الصبح یقرأ حزبه
من القرآن ثم انشد احد من اصحابه
شعرا فحصل له بکاء وتواجد فلما
اسکن قال ایلومون الناس یقولون

"ترجمه"

د جابر بن سمرة رض نه روایت دے هغه وائي
چه زه د نبي اکرم (ص) سره د سلو کرتونه زیات
ناست یم او وه اصحاب د ده چه ویل
به ئې شعرونه او هغه به چپ وو او ویل
کړ به ئې د هغوی سره تبسم کو او هغه
چه حکایت ئې د بعض مشائخو نه شوي چه
هغه به بعد د صبا د لمانځه نه یو حزب د
قرآن لوستو بیا به یو صحابي شعر جوړ کړو

فلان ملحد او زنديق قرأ الذي كذا
من القرآن ولم يخرج دمعه
فلما سمعت هذا الشعر كدت ان
اجن - اقول هذا فتح باب للسماع.

نو حاصل به شوده نه نړېږي او تواجد كله چه قرار شو
نو وه ئې ويل آيا ملامتيا وائي خلق چه وائي فلانى
ملحد يو يا فلانى زنديق دے ځكه چه وئے
لوستلو د قرآن نه او ونه وتلي اوښكے ددهٔ او كله چه
داشعر ئے واوريدلو نو قريبه وه چه زه ليونے كړى
زه وايم چه دا خلاصه دل د دروازه دى دسماع كښا.

دا پوره ټنى ذهغه هستى حالات دى چه الله پاك ئې په شان كښې فرمائي (وَمَن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ) يعنې چا چه د رسول ﷺ تعبيداري اوكړه په تحقيق سره ئې د خدائے تعبيدارى اوكړه.

## د وجد په باره كښې د نور وانبياء عليه السلام واقعات

1 كيميا سعادت په ص ٣٣٨/١٤٢ ركن چهارم كښې ليكلي دى [وخليل عليه السلام چون در نماز بودى جوش دل او از دو ميل شنيدندى] .

2 حافظ ابن كثير په كتاب البداية والنهاية په ص ١٧١/ج١ كښې ليكلي دى او روح البيان په ص ١/ج٨ كښې ليكلي دى. (ترجمه)

عن اسحاق بن بشار
قال لما اتخذ الله ابراهيم خليلا
القى في قلبه الوجل حتى كان
خفقان قلبه يسمع من بعيد كما
يسمع خفقان الطير في الهواء.

د اسحاق خوئ د بشار رضه نه روايت دے هغه فرمائي
چه چې كله الله ج ابراهيم عليه السلام خليل خپل
جوړ كړو په زړه كښې ئې ورته وجل (خوف) واچولو
حتى چه اوازئ د زړه دده لرې او رېديكېدو لكه
دوهغا نوا وازئ چه په هوا كښې اوريدے كيږي.

پوره نه حديث شريف بهجة السالكين په ص ١٠٣ د عوارف المعارف په حواله ليكلے دے
لوازم العبودية په ص ٤٣ كښې ليكلے دى كان خليل عليه السلام اذا ذكر خطيئته

يغشى عليه ويسمع اضطراب قلبه ميلا فى ميل) ترجمه: ابراهيم عليه السلام ته به چه څه خطا وریاد شوه بى هوشى به پرى راغله او د زړه درزا به ئى يو ميل لرى اوريدے شوه . ـ

## ٢ موسىٰ عليه السلام .

حجة السالكين په ص ٢٠١ د عوارف المعارف په حواله ليکلى دى

ان موسىٰ كليم الله عليه السلام يرد عليه الوارد فى صلوته وحال مناجاته فيتموج به باطنه كبحر ساكن تهب عليه الريح فتتلاطم الامواج وكان تمايل الموسىٰ كتلاطم امواج بحر القلب اذا هبت عليه نسمات الفضل وربما الروح تطلع الى الحضرة الالهية فتهم بالاستعلاء وللقالب بها تشبك وامتزاج فيضطرب القالب ويتمايل.

"ترجمه" په موسىٰ عليه السلام باندے به يو حالت راغى لکه يو درياب چه ارام وى چپه راشى او دريا به جوش او حرکت راشى او موجونه وهى د دى جوش او موجونو په سبب به روح د ده مبارک ع ډير کرت پورته تلو او قصد د جيګ والى به ئى کولو ليکن چونکه د قالب سره د خلطيت په سبب به ئى بدن مبارک بى تابه او بى قراره کيده او د ده مبارک رګ تاريکه او بى هوشه کيده هغه نبى تير شوى چه (وخر موسىٰ صعقا) .

عن عمران عن وهب قال اوحى الله تعالى الى موسىٰ اذا دعوتنى فكن خائفا مشفقا وجلا واسألنى حين تسألنى بخشية من قلب وجل واخشينى ، حلية الاولياء ص ٥٠ ج ٧

عمران د وهب نه روايت کړے هغه وئيلى دى چه وحى کړے وه خدائى موسىٰ ع ته چه کله ماته دعاګانے نو ويريد و تکے مهربانه او خاونده د وجل او سه او چه زمانه دى سوال کولو نو په خشيت او وجل د زړه سره ئى کوه او زمانه ويريږه ـ

